

د افغانستان اسلامي امارت

د ملکي تلفاتو د مخنيوي او سمع شکاياتوکميسيون

اداري رياست

گڼه: ۸۷ج۳ نېټه: ۱۴۴۰/۱۱/۲۷هـ ق مطابق 2019/7/30م

---

## د کال 2019 م د لومړيوشپږو مياشتو د ملکي تلفاتوراپور:

ګران هېواد افغانستان د يرغلګروامريکايانو او هغوي پورې تړلو ناتو ځواکونو ديرغل له پيل څخه ترديي دمه پورې په هره برخه کې خصوصاًد ملکي هيوادوالو د شهيدولو، ټپي کولو او کړولو له اړخه له لويو ننګونو سره مخ دي. د امريکايانو او کابل اداري لخوا څخه، تل په قصدي توګه هيواد والو ته مرګ او ژوبله رسيږي، زموږ هېوادوال کړول کيږي، بې ځايه کيږي او شتمنۍ يې لوټلې کيږي.

د روان 2019 ميلادي کال لومړنۍ شپږ مياشتې (جنوري، فبروري، مارچ ، اپريل، مئ او جون ) بيا هم زموږ د ملکي هيواد والو لپاره خونړۍ مياشتې وې.

د افغانستان اسلامي امارت د ملکي تلفاتو د مخنيوي او سمع شکاياتو کمېسيون د خپلو ولايتي رئيسانو، آزادو منابعو، قومي مشرانو او عامو وګړو په مټ، مجموعاً (932) د ملکي تلفاتو بوږنوونکې پېښې ثبت کړي دي .

له هغې جملې څخه (852) پېښې د امريکايانو، د کابل اداري اړوند اردو، پوليسو او اربکيانو لخوا رامينځته شوې دي.

(76) پيښې د داعش، يا نامعلومو کسانو اوياهم د خلکود خپل مينځي شخړو له کبله پېښې شوې دي.

د ملکي تلفاتو په مذکوره (932) پېښو کې مجموعاً (2464) تنو هيواد والو ته مرګ ژوبله رسېدلې، چې له دې څخه (1399) تنه يې شهيدان او متباقي (1065) يې زخميان دي.

په مجموعه (1399) شهيدانو کې (1376) تنه د امريکايانو اوهغوی پورې تړلو داخلي عسکرو، پوليسو او اربکيانو لخوا په بمبارونو او بريدونو کې شهيدان شوي، چې د مجموعې شهيدانو (92 %) سلنه جوړوي.

(123) تنه شهيدان د داعش، يا نامعلومو کسانو اوياهم د خپل مينځي شخړو په نتيجه کې رامينځته شوي چې (8%) سلنه کيږي.




بل پلو په تېرو شپږو میاشتو کې د(932) ملکي پېښو په ترڅ کې زموږ (1065) تنه هېواد وال ټپیان شوي، چې (953) تنه د امریکایانو او د مزدورې ادارې د ځواکونو لخوا ټپیان شوي او متباقي (112) د داعش یا نامعلومو او خپل مینځي شخړو کې ټپیان شوي دي




لکه څنګه چې نړیوالو ته څرګنده ده چې امریکایان اوکابل اداره غواړي چې خپله ماتې پټه کړي خپل ظلم او وحشت ته یې دومره زور ورکړی، چې نړیوال ریکارډ یې مات کړی اولاپه هم جریان لري. د تېروکلونو په توپیر سږ کال امریکایانو او هغوی پورې تړلې کابل اداره د ملکیانو د مرګ او ژوبلې سره سره ګڼ هیوادوال زندانونوته هم وراچول شوي او درانه مالي تاوانونه یې هم ورته رسولي دي چې له دې جملې څخه د روان کال په لومړنیو شپږو میاشتو کې زموږ (612) مظلوم هېوادوال په مختلفو شپنیو چاپو کې بندیان شوي دي، (47) بابه مساجد په بمونو انفجار یابمبارد شوي دي، مجموعه (9) بابه مکاتب. دوولس (12) صحي مراکز، (847) د عامو خلکو

کورونه، (88) واړه او غټ عراده جات، (789) بابه دوکانونه، (731) موټرسائیکلان ویجاړ او سوځول شوي دي. له دې څخه علاوه په سلګونو حیوانات (څاروي)، (70) تختې شمسی، (سولر) اومیلیونونه نقدې افغانۍ له مختلفو کورونو څخه دښمن لوت کړی دي اوهمداشان د دښمن لخوا د بې دفاع اومظلومو هیوادوالوپه سلګونو د غنمو او وربشو درمندونه هم قصداً سوځول شوي دي.

د افغانستان اسلامي امارت د ملکی تلفاتو د مخنیوي او سمع شکایاتو کمېسیون د اسلامي امارت په استازیتوب د یرغلګرو ټول بشرضدجنایات په کلکو ټکو غندي او په ډاګه کوي چې ذکرشوي ټول بشرضد جنایات د امریکایانواو د دوي د ملګرو لخواترسره شوي دي، یادکمېسیون پر نړیوالو بې پرې ادارو او بشري نهادونو باندي ږغ کوي، چې د دغه جنایاتو او بې دفاع ملکي هیوادوالوسره د وحشتونو پوښتنه، څیړنه اوغندنه وکړي.

موږ باور لرو چې امریکایان او ملګري به یې د وحشتونو په تر سره کولو او زیاتولو سره هیڅکله هم ونه توانیږي، چې خپل شوم اهداف تر لاسه کړي، بلکې په داسي اعمالو سره له خپلې اصلي څیرې څخه پرده پورته کوي. والسلام

د اسلامي امارت د ملکي تلفاتو د مخنیوي او سمع شکایاتو کمیسیون

ایمل آدرس : Molkietalafat.m@yahoo.com

داړیکې شمېرې: 0707918384 واټسپ 0794717946

دمخابري نمبر: 5357

دمخابري نوم: ( غاویر)